ورځپاڼه
# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
**یکشنبه د شعبان المعظم ۱۷ مه ۱٤٤٦ ق کال**، د سلواغې ۲۸ مه ۱٤۰۳ ل کال، دفبروري ۱٦ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵٤۵ مه، پرله پسې ګڼه ٦۳۵ مه، اتمه دوره

### د رياست الوزراء اقتصادي معاونيت:
## د لويو لارو د جوړولو او بيارغولو چارې په چټکۍ سره روانې دي

اسلامي امارت پــه ۲۰۲۴م کال کــې د هېــواد د يو شــمېر مهمو لويــو لارو، ســړکونو او د دې لارو د سترو او کوچنيو پلونو او پلچکونــو جوړونې او بيارغونې تــه ځانګــړې پاملرنه کــړې او پــه دې برخه کې يې ګڼ شــمېر پروژې پيل کړي دي.

د کابل ـ کندهــار لويه لاره: د دې لارې د بيارغونــې چارې تر ډېره بريده بشــپړې شــوې دي، چې د هېواد د جنــوب او مرکز ترمنځ د تــګ او راتګ او همدارنګه د ســوداګرۍ په برخه کې ورسره ګڼې اسانتياوې رامنځته شوې دي.

د ســالنګ لويه لاره: د ۸۰ کيلو متره ســړک د اســاسي بيارغونې کار پــه درېوو لاټونــو کې پيل شــوی او چارې يې پــه چټکۍ سره روانــې دي، چــې د هېواد د شــمال، مرکز او جنوب ترمنځ د ترافيکي بندښت کولو ترڅنګ د سوداګرۍ او ټرانزيټ په پراختيا کې مهم رول لري.

د کندهار ـ ارزګان سړک: د ۱۸۰ کيلو مــتره ســړک د لومړۍ ۱۳ کيلومتره برخې پر بيارغونه کار روان دي... ۳مخ

### دکابل والي:
## د نوي کابل ښار د لومړي فاز په بشپړېدو سره به ۳ ميليونو تنو ته د اوسېدو ځای برابر شي



پلازمېنــه کابــل چې څه د پاســه ۸ ميليونه تنــه نفوس لري، شــاوخوا ۳ ميليونــه يــې پاکو اوبو، برېښــنا، روغتيايي او ښــوونيزو بنسټونو ته لاسرسي نه لري.د کابل والي ملا امين عبيد له رسنيو سره په مرکه کې ويلي، د نوي کابل ښار پروژې د لومړي فاز په بشــپړېدو سره به د دې ښار ګيه ګونــه تر ډېره راکمــه او ۳ ميليونو تنو ته به د اســتوګنې ځايونه برابر شي.عبيد په دې اړه وايي: ((د نوي کابل ښار يو فاز افتتاح شو. دغه فاز پر ۳۷۰ زره جريبه ځمکه جوړېږي او په کې... ۳مخ

## د مصر او يو شمېر افريقايي هېوادونو له زندانونو ۱۷ افغانان آزاد شول

د مــصر پــه پلازمېنــه قاهــره کې د افغانستان اسلامي امارت د لوي سفارت په هڅو په تېرو درېوو مياشتو کې، د مصر په ګډون له يو شــمېر افريقايي يادونــې وړ ده؛ چــې د بنديانــو دغه پروســه په قاهره کې د افغانستان لوي سفارت او د يادو هېوادونو په همغږۍ ترسره شوې.همداراز ياد سفارت هڅه



هېوادونو، لکه مراکش، ليبيا، سوډان او موريتانيا څخه ۱۷ افغانان چې د بېلابېلو د لايلو له امله بنديان وو، له بند څخه ازاد او هېــواد ته راولېږدول شــول.د کوي، چې په راتلونکي کې هم د خپلو اتباعو د ساتنې او د هغوي د حقونو د خوندي کولو لپــاره خپلې هلې ځلې جاري وساتي.

## افغان او ايراني لوري د سوداګريزو ستونزو د حل لپاره غونډه وکړه

د فــراه په شــيخ ابونصر فراهي بنــدر کې د افغانســتان او ايران د لوړپــوړو چارواکــو ترمنــځ ګډه ناســته وشــوه، چې په کې د ســوداګريزو ســتونزو د حل، د بندر د ســړک د رغنيزو چارو د چټکتيــا او د ګــډو همکاريو د پياوړتيــا په اړه بحث وشــو. دغه ناسته په کابل کې د ايران د ســفير علي رضا بيګدلي، د هرات د سرکنســل علي رضا مرحمتي، د ايــران د جنــوبي خراســان د اقتصادي مرستيال والي جعفري، د فــراه د والي مولوي غوث‌الدين رهــبر او د دواړو هېوادونــو د يو شــمېر لوړپوړو او سيمه‌ييز چارواکو په ګډون ترسره شــوې ده. د فراه والي مولوي غوث‌الدين رهــبر د دواړو هېوادونــو د سوداګريزو اړيکو پر پراخولو ټينــګار وکړ او د شــيخ ابونصر




فراهي بندر د ســړک د رغنيزو ستونزو د هواري لپاره يې د ګډې کمېټــې د جوړېــدو خبر ورکړ نوموړي په جوړه شــوې ناســته کې وويل: دا کمېټه به د ايران او افغانستان چارواکو ته د سړک د رغولو د چارو او اړوند راپورونه وړاندې کړي.د پروژې مســئول انجنير محمد محمدي د ســړک رغولو پروسې د چټکتيا لپاره د بشپړو تجهيزاتو او چمتووالي ډاډ ورکړ، خو د قير، تېلو او بوديجې کمښت يې د پروژې د ځنډ اصلي عوامــل وبلل.د ايــران د جنوبي خراســان اقتصادي مرستيال والي جعفري وويــل: ايران چمتو دی چې د يــاد ســړک د رغونې او نورو سوداګريزو ستونزو د حل لپاره ګډې ناستې ترسره کړي او هر اړخيزې همکارۍ وکړي.په کابل کې د ايران ســفير علي رضا بېګدلي وويل: ((افغانســتان هر کال له ايــران سره له ۵۰ ميليونو ډالــرو زيــات صــادرات لري، خــو دا شــمېر لا زياتېدلی شي)) نوموړي زياته کړه، چې ايران له افغانستان سره ... ۳مخ

## لوګر کې د هستوګنې ۷ ښارګوټي جوړېږي

لوګر کې د کور او ښار جوړولو رئيس مولــوي مطيع اللــه زاهد وايي: د کــور او ښــار جوړولو د وزيــر شــيخ حمداللــه نعماني له لارښــووني او حکم سره ســم يې د آبــادۍ لپاره متې رانغښــتې




دي.نومــوړی زياتوي:لوګر کې يې د اوو هســتوګنيزو ښارګوټو د جوړولو په موخــه تاببا نيولې، چــې د دوه هغو لپــار يې ځمکه تشــخيص کړې ده.مولوي مطيع الله زاهــد وايي، اوس يې د لوګر مرکــز پل علم ســاحه کې د دوو نويو استوګنيزو ښارګوټو لپاره د ځمکې ځانګړې کولو او کروکي چارې پيل کړې دي.د ښاغلي زاهد په خبره: د هر ښارګوټي لپاره ۷۰۰ جريبــه ځمکه په پــام کې نيول شــوې، چې ټولــه ۱٤۰۰ جريبه ځمکه ده... ۳مخ

## د غلام خان بندر له لارې ۴۵۰۰ ټنه وچه مېوه بهر ته صادره شوې

د خوســت ولايتي مســئولين وايي: پــه روان لمريز کال کې د غلام خان بندر له لارې د څه باندې ۱۱ ميليونو ډالرو پــه ارزښــت ۴۵۰۰ ټنه وچه ميوه صادره شــوې ده. د مســئولينو په خــبره په دغه مقــدار وچه ميوه کې، جلغوزي، پســته او د بادامو په شمول ۱۷ ډوله ميوه شامله ده. ورته مهال په خوست کې ځينې سوداګر پر ســوداګريزو توکــو د تعرفو او مالياتو لوړېدل او په ويزو اخيستو کــې ځنډ جــدي ســتونزې يادوي. دوی وايــي، کــه ســتونزو تــه يې رسېدنه وشي ســوداګري به لا زياته وغوړيــږي. ورتــه مهال بيا ســيمه ييز مســئولين وايي، سوداګرو ته به اړينې آسانتياوې برابرې کړي.

## هلمند کې د ۳ پروژو چارې پيل شوې

د کليــو د بيارغونــې او پراختيــا وزارت وايــي: د هلمنــد ولايت په کجکي ولســوالۍ کــې د ۷۶ کيلومتره او د ســفيد حصار د ۸.۸ کيلومتره جغلي سړکونو د جوړولو عملي چــارې د يولړ مراســمو په



ميليونو افغانيو په لګښت د درېوو پروژو؛ دابغول کلي د اوبو لګولو د اته کيلومتره کانال، د شيري د ۳۰ ترخ کې رســماً پيل شوې.په يادو مراســمو کې د کليــو د بيارغونې او پراختيا ... ۳مخ

## هزاران جريب زمين در غزنی سروی شد

قاری انجنير يوسف لطيف رئيس سروی و جــی آی اس وزارت شهرسازی و مسکن می ګويد که تيم تخنيکی انجنيری اين رياست هزاران جريب زمين را در ولايت غزنــی سروی کرده اســت.قاری لطيــف ګفــت، تيــم وی ۳ هزار و ۹۸۰ جريــب زميــن را سروی توپوګرافــی کرده اســت.وی می ګويد اين سروی را به هدف اعمار شــهرک نمــبر ۲ بــرای مهاجرين در اين ولايت انجام داده اســت. وزارت شهرسازی و مسکن در هر ولايت براساس سطح نفوس و نياز مهاجرين شهرک می سازد و سپس بر اساس ليســت کميسيون عالی محترم حل مشــکلات مهاجرين برای خانواده های نيازمند عودت کنندګان توزيع می کند.

## له افغانستان څخه ازبيکستان ته تلونکو بندو پاټې موټرو ته د تګ اجازه ورکړل شوه

د بلــخ ولايــت ســيمه ييزو چارواکو خــبر ورکړی، چې لــه دغــه ولايت څخــه يو ۹ کســيز پلاوي د ستونزو د حل لپاره ازبيکستان ته سفر کړی او له ازبيــک چارواکو سره يې کتلي دي. د بلخ ســيمه‌ييزو مسئولينو ويلي، دې کتنه کې د افغانستان د ټرانزيټي موټرو د بند پاټې کېدلــو، په ګډ بازار کې د افغان وچو مېوو د پلور د مخنيــوي او روغتــون ته د بېړنيــو ناروغانو د نه لاسرسي پر ســتونزو خبرې شوې دي.




پــه همدې تــړاو خبرپاڼه کې راغــلي، چــې لــه دې ليدنــو وروسته يادې ستونزې هوارې شــوې او پرېکړه شــوې چې ازبيکســتان به د افغانســتان ۱۵۰۰ بندو پاټې... ۳مخ

## ارزګــان کــې ۱۶ کلنه دښمني پــای تــه ورسېــده

د سرحدونــو، قومونــو او قبايلو چــارو وزارت وايــي؛ د ارزګان ولايت د سرحدونــو، قومونو او قبايلو چارو آمريت د مســئولينو، قومي مشرانــو او علماوو په ګډو هلوځلو د ياد ولايت په مرکز کې د يوې کورنــۍ د څو غړو ترمنځ د خپلمنځــي جنجالونــو له امله راپورته شوې شخړه، چې شاوخوا ۱۶ کاله يې دوام درلود حل او فصل شــوه.ياد وزارت زياتوي؛ د دغې شخړې پرمهال، چې يوکس پکې وژل شوی و او د ګڼو مالي زيانونو ترڅنــګ د ژورو اختلافاتــو له کبله د يــادې کورنــۍ غړي سره جلا شوي وو... ۳مخ




## نورستان کې يو روغتيايي مرکز جوړ او پرانيستل شو



د عامې روغتيــا وزارت خبر ورکړی، چې د نورستان ولايت د وانت ولسوالۍ په نشيګرام ســيمه کې يو روغتيايي مرکز ګټې اخيستنې ته وسپارل شو. د يــاد وزارت په خبرپاڼه کې راغــلي، چې دغه مرکــز به د سيمې اوسېدونکو د روغتيايي ســتونزو په حل کــې تر ډېره مرســته وکړي.له بلــې خوا د نشيګرام اوســېدونکي د دې مرکز پــه جوړېدو خوښــي څرګنــدوي او زياتوي، چې لــه دې وړاندې به د روغتيايي خدمتونو لپاره تر لرې ســيمو تلل او له امله يې... ۳مخ




## د نوي نسل سالمه روزنه؛ د آزاد افغانستان د بقا اساسي شرط

د افغانستان د خپلواکۍ لپاره اوږده مبارزه شوې ده، چې پایله یې د اشغال پای ته رسېدل او د هېواد آزادي وه، خو آزادي یوازې د یوه هدف تر ترلاسه کولو پورې محدوده نه ده، بلکې ساتنه او پیاوړتیا یې خو برابره مهمه ده. اوس چې افغانستان د بهرني تسلط له شره خلاص شوی، له ټولو مهم مسئولیت د نوي نسل سالمه روزنه ده، تر څو هېواد داسې مسلکي او بایمانه افراد ولري، چې نه یوازې د خپلواکۍ ساتنه وکړي، بلکې د هېواد د پرمختګ لپاره هم عملي گامونه واخلي.

هېوادونه یوازې د پوځي ځواک، طبیعي زېرمو یا جغرافیوي موقعیت له مخې نه، بلکې د تعلیم، پوهې او اخلاقي تربیې پر اساس ځواکمنېږي. که یو ملت خپل راتلونکی نسل سالم وروزي، نو خپلواکۍ ته د تلپاتې خوندیتوب ضمانت ورکولی شي. که برعکس، نسل ناسم وروزل شي، نو اشغال که څه هم فزیکي بڼه ونه لري، خو فکري غلامي بیا هم د ټولنې برخلیک ټاکلی شي.

په همدې دلیل، د افغانستان د پرمختګ اساسي اړتیا داده چې د نوي نسل د فکري، علمي او اخلاقي روزنې لپاره یوه واضحه، اوږدمهاله او جامع تگلاره ولري. داسې تعلیم ته اړتیا ده، چې د اسلامي ارزښتونو او ملي هویت ساتنه وکړي او ترڅنګ یې ځوانان د علم، تخنیک او مسلکي مهارتونو له پلوه د نړیوالو سیالیو لپاره چمتو کړي.

آزاد ملتونه تل د خپل دیني، ملي او کلتوري هویت ساتنه کوي، ځکه چې فکري خپلواکي د سیاسي خپلواکۍ بشپړوونکې ده. د افغانستان راتلونکی نسل باید داسې وروزل شي چې د اسلامي ارزښتونو، ملي هویت او خپلواکۍ دفاع ته ژمن وي. دا هدف یوازې د ښوونیز نظام، د دیني علماوو د رغنده رول او د کورنیو د سالمې تربیې له لارې ترلاسه کېدای شي.

کله چې ځوانان د خپل دیني او ملي هویت پر ارزښت وپوهېږي، دوی به هېڅکله د فکري یرغل او د پردیو ایډیالوژیو د نفوذ ښکار نه شي. د همدې لپاره، د تعلیمي نصاب بڼه باید داسې تنظیم شي، چې زده کوونکي هم د عصري علومو زده کړه وکړي او هم د اسلامي او ملي ارزښتونو پر بنسټ اخلاقي، فکري او ټولنیز مسئولیتونه زده کړي.

یوه آزاده ټولنه هغه مهال پر خپلو پښو درېدای شي، چې مسلکي کدرونه ولري. د افغانستان لپاره اړینه ده چې د طب، انجنیري، اقتصاد، مدیریت، کرنې، ټکنالوژۍ او نورو برخو کې متخصصین وروزل شي، تر څو هېواد له اقتصادي انحصاره خلاص شي او د بهرنیو پر مرستو متکي پاتې نه شي.

حکومت ته په کار ده چې د تخنیکي زده کړو لپاره ځانګړې پروگرامونه پیل کړي، د صنعت، سوداګرۍ او کرنې په برخو کې د ځوانانو ظرفیت لوړ کړي او هغوی ته د کار فرصتونه برابر کړي. که یو ملت مسلکي او متخصص کدرونه ونه لري، نو د نورو له اقتصادي تسلط څخه نشي خلاصېدلی.

د نوي نسل سالمه روزنه یوازې د فردي اصلاح لپاره نه، بلکې د ټول هېواد د بقا او پرمختګ لپاره حیاتي ارزښت لري. که افغانان د خپلواکۍ دوام غواړي، نو باید د تعلیم، روزنې او فکري... ۳مخ

## د مولوي امیرخان متقي وینا؛

# د علماوو او متعلمینو رول او د ټولنې اړتیاوې

رحمت‌الله فیضان

ظفر حسن ایبک په خپلو خاطراتو کې د امیر حبیب‌الله خان د حکومت پر مهال د افغانستان د تعلیمي وضعیت ارزونه کړې. نوموړی وایي چې هغه مهال یوازې یو سلنه افغانان د لیک او لوست وړ وو، چې زده کړې یې هم یوازې په شخصي دیني مدارسو کې کړې وې. په افغانستان کې نه رسمي ښوونځي وو او نه هم لوړې زده‌کړې، تر دې چې وروسته د امیر حبیب‌الله خان له لوري حبیبیه ښوونځی او حربي ښوونځی تاسیس شول. د حبیبیه ښوونځي د تدریس چارې اکثراً د هغو دیني علماوو له خوا پر مخ وړل کېدې، چې زده کړې یې په دیوبند مدرسه کې کړې وې.

که څه هم د افغانستان د رسمي زده‌کړو بنسټ د امیر حبیب‌الله خان له لوري کېښودل شو، خو د تدریس چارې یې دیني علماوو پر مخ وړلې. دا علما، چې له انګلیسي استعمار سره په مستقیم ډول ښکېل وو، نه یوازې یې د علم سنګر ګرم ساتلی و، بلکې د جهاد په ډګر کې یې هم مهم رول درلود، خو د دې لپاره چې د علماوو حیثیت ته زیان ورسېږي او اعتبار یې کم شي، استعمار د هغوی پر ضد منفي تبلیغات وکړل او د تمدن او پرمختګ ضد یې معرفي کړل. بدبختانه، دا ذهنیت تر ننه هم یو ډول موجود دی، چې له امله یې د علماوو اصلي څېره، د هغوی علمي مقام او د ملت لپاره د هغوی هیلې او امیدونه تر ډېره پټ پاتې شوي دي.

د افغانستان د علماوو هیلې او ارزوګانې، چې د خپل ولس د خدمت لپاره یې لري، د بهرنیو چارو د وزیر مولوي امیرخان متقي په وینا کې ښې څرګندېدای شي.

مولوي امیرخان متقي د ریاض العلوم شاګردانو ته په خطاب کې ویلي:

« کوشش وکړئ چې د خپلې ټولنې معماران جوړ شئ؛ هم د دین خدمت وکړئ او هم د دنیا.»

هغه زیاته کړه چې افغانستان له څلورو لسیزو راهیسې د جګړو شاهد پاتې شوی، دوه ځله اشغال شوی او اوس زموږ د دې زخمي وطن زخمونو ته د مرهم اړتیا ده. زموږ ټولنه د یوه کور په څېر ده؛ هغه اړتیاوې چې یو کور یې لري، ټولنه یې هم لري.

د سالمې ټولنې اړتیاوې

مولوي متقي ټینګار وکړ، چې یوه سالمه ټولنه د بېلابېلو مسلکونو او کسبونو متخصصینو ته اړتیا لري. زموږ هېواد ډاکټرانو، انجنیرانو، معمارانو، کروندګرو، مالدارانو، د برښنا متخصصینو، د ترانسپورت انجنیرانو او د اړینو صنعتي توکو تولیدوونکو ته اړتیا لري.

موږ باید دې ټولو برخو ته وده ورکړو، خلک وروزو او هېواد ته عملي خدمت وکړو.

- تنګ نظري مه کوئ!
- یوازې پر ځان اتکا مه کوئ!
- د ټولنې هر فرد ته د عزت په سترګه وګورئ!
- خپل فکرونه لوړ کړئ، له تنګ نظرۍ ځان وباسئ!

د ټولنیز یووالي اصل

زموږ ټولنه د ګلانو د بڼ په څېر ده، چې هر ګل مختلف بوی او رنګ لري. دا رنګارنګي او ښکلاوې ټولې یو ځای د دې بڼ ښکلا جوړوي. ټولنې ته هم د همدې اصل له مخې وګورئ؛ هر فرد ارزښت لري او موږ باید ټول یو موټی او متحد وساتو.

- هېڅوک باید مایوس نه شي!
- هېڅوک باید فرار ونه کړي!
- ولې باید څوک فرار وکړي؟

موږ باید د هغو کسانو زړونه بېرته خپل کړو، چې له ټولنې جلا شوي دي.

زموږ مسئولیت دا دی، چې په تعلیمي مراکزو کې مثبت فکرونه عام کړو، ترڅو ټولنه د وروروولۍ، زغم او ګډ پرمختګ پر لور بوزو. د ټولنې ټولو افرادو ته باید د قدر په سترګه وکتل شي؛

- مشر ته د پلار، ځوان ته د ورور او کشر ته د زوی په سترګه.

که دا اصل مراعات کړو، کولای شو خپل ولس ته مؤثر خدمت وکړو.

موږ باید داسې علما وروزو، چې د دین او دنیا په چارو کې پوهه ولري، او د ټولنې د خدمت جوګه شي.

همداراز، زموږ کړنې او اعمال باید داسې وي، چې خلک دین ته تشویق کړي.

د ښاغلي متقي وینا د علم، تمدن او دیني علماوو د رول په اړه ژور بحث وړاندې کوي.

که موږ د علم، زغم او اتحاد اصل ته ژمن پاتې شو، نو افغانستان به د یوه روښانه راتلونکي پر لور بوزي. د مولوي امیرخان متقي وینا موږ ته دا درس راکوي چې یو پرمختللی او سالم افغانستان یوازې د علم، زغم او یووالي له لارې رامنځته کېدای شي. هغه د علماوو د علمي مقام او د ټولنې د متوازن پرمختګ لپاره پر همکاریو ټینګار کوي. د متقي وینا د ځوان نسل لپاره یو لارښود دی، چې د خپل دین او وطن په خدمت کې متحد شو، د ټولنې د هر اړخ پرمختګ ته توجه وکړو او د خپلو شخړو او تفریقاتو پر ځای د یوې روښانه راتلونکې لپاره لاس په کار شو. یوازې د یووالي، پوهې او کار پر مټ کولای شو خپل وطن ته پراخ پرمختګونه راوړو.

# کوتاه نگرشی پیرامون تجاوز قوای سرخ اتحاد جماهیر شوروی وقت بر سرزمین مجاهد پرور ما

استوار

پس از ختم جنگ دوم جهانی و دو قطبی شدن جهان در سال ۱۹۴۶ یعنی همان زمانی که امریکا و شوروی وقت به حیث دو ابر قدرت در جهان عرض وجود می‌کنند.

درست پس از همین زمان جنگ ها نیز شیوه وانداز نیابتی را به خود اختیار می‌نماید، روس ها وامریکایی ها در قفا سازمان دهی جنگ های نیابتی را به دست گرفته، دنبال منافع و امیال مغرضانه خویش می افتند و باهم رقابت های مرموزانه را آغاز می نمایند.

این رقابت های شوم ونابخردانه باعث تباهی یکتعداد کشور ها شده واین دوگانگی تاا‌کنون نیز ادامه دارد، به عناوین مختلف حلقه های حمایتی برای جانبداری خویش تشکیل دادند و باهمدیگر رقابت نمودند که این در کل نظم ونظام جهانی را مختل وناهنجاری های جهانی را به بار آورده است .

در این میان روس ها خواب وخیال تسخیرکشور عزیز ما را در سر پرورانیدند ،یکتعداد انسان های مزدور وسست عنصر را باشعار های پوچ ومیان تهی تحت نام خلقی وپرچمی تربیه نمودند تاباشد باهمکاری همین عناصر پا به سرزمین مقدس ما بگزارند که چنین هم شد نیرو های ارتش سرخ روس تا به دندان مسلح پا برحریم این سرزمین مقدس گذاشتند و فکر می‌کردند که افغانستان را به کام خود در آوردند، غافل از اینکه فکری برای پیامد ناگوار آن کرده باشند.

ملت مجاهد پرور افغانستان که آزادگی در تار وپود شان نهفته است با دستان خالی علیه این تجاوز بی شرمانه به پا برخاستند از همین جاست که جنگ حق وباطل آغاز گردید، شهر ها ویران شد، هزاران جوان افغان شهید ومعلول گردید ،شکنجه و بیداد به غرض سرکوب آزادی خواهان تاحدی بالا گرفت که گورستان های دسته جمعی در هرگوشه و کنار وطن از شهدای گلگون کفن ساخته شد بمباران های ظالمانه برقرا وقصبات در هرگوشه وکنار وطن از سوی نیروهای سرخ روس وحامیان شان صورت گرفت، اما این همه بیداد ومظالم نتوانست جلو عطش آزادی خواهی این ملت آزاده را بگیرد، وضع قوانین ودستاتیر نابخردانه نظام دست نشانده روس ها نه تنها اینکه جا نمی افتاد، بلکه برعکس بر قوت و جوش و خروش آزادی خواهان می افزود. باگذشت زمام و قوت ایمان راسخ مجاهدین افغان روز تا روز قوی وقوی تر می شدند وپاهای متجاوزین وحامیان حلقه بگوش شان به لرزه در آمده می رفت تا این که به حس آزادی خواهی... ص۳

# له ډیپسیک پرته د چین د ټکنالوژۍ ۱۰ کلن پلان رنګ راوړ

جمیل باور

د چین د مصنوعي ځیرکتیا پر مټ جوړ شوي ډیپسیک اپلکېشن ټولې نړۍ په ځانګړې توګه امریکا ته ټکان ورکړ،چین په دې وروستیو کلونو کې ورو خو په پرلپسې ډول «د چین جوړ ۲۰۲۵» پلان له مخې له تېرو لسو کلونو راهیسې د مصنوعي ځیرکتیا په ګډون د لوړې کچې ټکنالوژۍ تولید ته مخه کړې.

د بېلګې په ډول د څېړونکو لپاره د ډیپسیک د بریالي مزل پیل دا مانا لري چې چین په دې برخه کې خپلې پروژې او پلانونه په ښه توګه عملي کوي. چینایانو په ۲۰۱۵ کال کې په ځانګړو مراسمو کې « د چین جوړ ۲۰۲۵» یا مېډ اِن چاینا ۲۰۲۵ پلان اعلان کړ.له دې څخه یې موخه دا وه چې په ورځنی ډول د هغو کاربدونکو توکو چې ډېر یې ارزانه دي او د « چین جوړ» پرېږ لیکل شوی وي په اړه هغه فکر بدل کړي چې هر وخت به د ټیټ کیفیت په سترګه ورته کتل کېږي.

په دې لړ کې د ټکنالوژۍ لس صنعتي اداري د بنسټیزو ساحو په توګه وپېژندل شوې چې تر ۲۰۲۵ م کاله پر نړۍ غلبه وکړي.د هغو له جملې مصنوعي ځیرکتیا، کمپیوټري سیالۍ، برښنایي موټر، تازه کېدونکي انرژي، د لمریزې برښنا تولیدي دړې او د بټریو تولید په ټکنالوژۍ کې د چین د پرمختګ په پلان کې له ورایه ښکاري او په ډېرو برخو کې چین خپلو موخو ته رسېدلی هم دی او اوس د عمده لوبغاړي په توګه ان ویل کېږي چې دغه هېواد ځینو برخو کې سختو اټکلېدونکو موخو ته رسېدنه کوي. د لندن په کېنګز کالج کې د اقتصادي پراختیا څېړونکې ډاکتره یودان ګانګ وایي:« زما په اند د چین جوړ ۲۰۲۵ پلان په پراخه کچه بریالی و.» نوموړې وایي: « په ډېرو برخو کې چین د رهبرۍ تر کچې رسېدلی او په ځینو صنعتونو کې خو ان نړۍ ته سرلاری دی.»

چین د ګاډو په تولید کې هم له جرمني، جاپان او امریکا مخکې شوی او دا مهال چین نړۍ کې له بل هر هېواده ډېر موټر پلوري.د برښنایي موټرو د پرمختګ سر هم چین ته رسېږي، ځکه دا هېواد دمګرۍ نړۍ کې د ډېرو بټریو جوړوونکی یادېږي.د انرژۍ نړیواله اجنسي (ای ای اې) وایي دا وخت نړۍ کې د لمریزې برښنا د تولید له ۸۰ تر ۹۵ سلنې دړې په چین کې تولیدېږي. د څېړنو له مخې چین د نوي کېدونکو انرژیو ځواک دی، دوی وړاندوینه کوي چې تر ۲۰۲۸ کاله به چین نړۍ کې له ټولو ډېره ۶۰ سلنه نوي کېدونکي انرژي تولید کړي، دغه راز په ډرون کامرو کې هم دا هېواد سرلاری دی او چین پر فضا حکومت کوي. د دې لپاره چې چین د ټکنالوژۍ په نړۍ کې خپلو موخو ته رسېدلی وي د چین کمونست ګوند د ۲۵۰ وړو موخو نقشه جوړه کړې، چې د دې ترسیم شوې نقشې ۸۶ سلنه موخې یې تر لاسه کړې دي.

د جرمن مارشال فنډ اداري مسئول او د جوبایډن پخوانی سلاکار لېنډسې ګورمن وایي، «چین د حکومتي ملاتړي بودجې د سم لګښت له امله بریالیتوب ته ورسېد، د چین حکومت د څېړنو او پانګونې له اجنډا سره مخکې ځي.» لنډسې ګورمن دا هم وایي چې چین دا وړتیا لري چې بهرنۍ پانګونې او هنر خپلې خوا ته جذب کړي، دوی هڅول کېږي چې له چینایي کمپنیو سره پر ګډه کار وکړي. چین دغې موخې ته د رسېدو لپاره زیاته اندازه پیسې مصرف کړې. د امریکا متحدو ایالاتو د کانګرس یو څېړنیز رپوټ وایي چې چین داسې پلان جوړ کړی چې په څېړنو او د بهرنیو کمپنیو په اخیستلو یونیم ټریلیون ډالره ولګوي. دا رپوټ زیاتوي چې تر ۲۰۲۰م کاله دې برخه کې ۶۲۷ ملیارده ډالره لګېدلي دي.د چین جوړ ۲۰۲۵ کال پلان دومره بریالی شو چې له اعلانه څو کاله وروسته چین له دې امله چې د سیالانو به یې ډېر ورپام شي د دې شعار بیا بیا اعلان او یادول بند کړل.

که څه هم دا ناوخته و، ځکه په وروستیو کلونو کې په لوېدیځه نړۍ کې ډېرو هېوادونو پر هغو توکو او تخنیکي شیانو محدودیتونه ولګول چې چین ته صادرېږي.د دې بندیزونو یوه موخه دا وه چې د چین ګړندی پرمختګ ودروي، خو دا ډول بندیزونو چین لا پرمختګ ته اړ کړی. که څه هم له پیله د ‹چین جوړ ۲۰۲۵› پروژې یوه موخه پر ځان د چین بسیا کېدل وو، خو بندیزونو لا ژور کار ته وهڅاوه. بریتانیا کې د کارډیف پوهنتون د اقتصاد برخې څېړونکی پروفیسور پېنګ زو وایي: په چین کې یوه پخوانۍ مشهوره مقوله ده چې «ژوند تل خپله لاره خپله جوړوي.» چینایان وایي چې محدودیتونه او بندیزونه یوازې رېښې بدلوي او په لوري یې اغېزه نه پرېږدي.

کلونه کېږي د امریکا له خوا چین ته پر صادراتو له ډېر کنټرول وروسته چین ونه توانېد چې پیاوړي چیپونه ومومي، خو وروسته یې په ډېر کم نرخ اغېزناکه خپل موډل جوړ او کمپنیو ته ور وپېژانده.ځینو کمپنیو بیا هم... ۳مخ

# د نړۍ هر زورواکي چې پر افغانستان یرغل کړی له ماتې سره مخ شوی

حکمي

افغان ملت د تاریخ په اوږدو کې تل د پردیو زورواکو او ځان غوښتونکو یرغلګرو د بې رحمه، ناروا او د هر راز انساني اصولو او نړیوالو قوانینو خلاف له وحشي یرغلونو سره مخ شوی، خو تاریخ ثابته کړې ، چې باتورو او په خپلې پاکې خاورې مینو افغانانو تل د ملي یووالي پر عالي روحیه او د هیواد پالنې په ځانګړي احساس سرښندونکې مبارزې کړې او د پاک خدای (ج) په مرسته، فضل او کرم یې د یرغلګر دښمن پر وړاندې تل بري موندلی دی. البته دروان لمریز کال د سلواغې میاشتې ۲۶ نمه نېټه هم پر افغانستان د سرو لښکرو د ماتې او له دې هیواد څخه دتېښتې له ورځې سره سمون خوري ،چې له نن څخه ۴۵ کاله مخکې د (۱۳۵۸) لمریز کال د مرغومي په شپږمه نېټه د پخواني شوروي اتحاد سرولښکرو هم د انګریزانو د یرغل په څېر له (هوا، حیرتانو بندر او د تورغونډۍ) له لارې پر افغانستان یرغل کړی و، خو د افغانستان مسلمان او پر آزادۍ مین ملت سراسري پاڅون وکړ او د هجرت او جهاد لاره یې خپله کړه.په هرحال، د روسانو د راتګ یوازې افغانستان هدف نه و، دوی د سیمې ډېر هېوادونه په ځانګړي ډول ګاونډیان لکه: ایران او پاکستان په پام کې لرل او غوښتل یې د هندوستان تر تودو اوبو پورې ورسېږي، په دې وخت کې روس ( پخوانی شوروي اتحاد ) د سیمې یو ابر قدرت جوړ شوی و، چې پر ازبیکستان، تاجیکستان، ترکمنستان، آذربایجان، ارمنستان او د ماوراالنهر پر هېوادونو یې خپټه اچولې وه.

دغه لوی سور ښامار یوازې آسیا نه غوښته،بلکې غوښتل یې چې پر نړۍ باندې خپله لویه امپراتوري جوړه کړي، دوی د خپل وخت پرمختللې وسلې او قوي نظامي او تخنیکي وسایل په لاس کې لرل او د ځمکې او هوایي ځواک په درلودلو سره داسې لوی قوت و،چې په نړۍ کې بل داسې قوت نه و، چې د دوی مخه ونیسي.نورو قوتونو لکه امریکا او برېتانیې په خپلو کورونو کې له دې ښاماره وېره درلوده او حتی ټولې نړۍ ځان خوندي نه باله.

دې سور ښامار د نړۍ د ټولو قوانینو خلاف پر افغانستان یرغل وکړ، دغه تېرې څه د پاسه نهه کاله وخت ونیو، افغانان د هېواد په لر او بر کې د دوی پر وړاندې راپورته شول، دوی ( روسانو) داسې ظلمونه ترسره کړل، چې د بشر په تاریخ کې ساری نه لري،ډله ییزې وژنې یې وکړې، ماشومان، ښځې او سپین ږیري یې شهیدان کړل او لوی لوی کلي یې تر خپلو توپونو لاندې کړل، چې اوس په ځینو ولایتونو کې پر هغو خلکو چې په ډله ییز ډول شهیدان شول ځلې ولاړ دي.

د روسي لښکرو پر وړاندې د افغانانو بې ساري جهاد کې یو میلیون افغانان شهیدان، یو میلیون معلول او اووه میلیونه افغانان بېلابېلو هېوادونو ته مهاجر شول چې په دومره لویه کچه د افغانانو قرباني به تل په نړیواله کچه د تاریخ په پاڼو کې ثبت وي.

دغه سره لښکر غوښتل افغانان د مځکې له سره ختم کړي، چې د پلټنو له مخې د هرو دوو افغانانو په سر دوی یو ماین زموږ په هېواد کې ښخ کړی و، کله چې دغه سره لښکر زموږ په هېواد کې ماتې وخوړه، نو دا یې هم وویل، چې زموږ ماینونه به زموږ له ماتې کلونه وروسته هم له افغانانو سره جنګېږي.

د شوروي سرو لښکرو د شرمېدلې ماتې او د مجاهدینو... ۳مخ

# افغان اعلانات



**موضوع: اعلان تصمیم اعطای قرارداد**

بدنوسیله به تآسی از فقره (۲) ماده چهل وسوم قانون تدارکات به اطلاع عمومی رسانیده میشود شرکت امارتی نفت وگاز افغانستان در نظر دارد، قرارداد پروژه: اعمار تعمیر اداری مدیریت عمومی نفت گاز ذخیره جدید نمبر ۲ کابل بانک ریاست حیرتان ولایت بلخ با شماره تشخیصیه AOGC/NCB/1403/W-034 رابه شرکت ساختمانی مومن شمال، دارنده جواز نمبر (۲۹-۰۱-۱۸۳٤) واقع فاریاب پلازا ناحیه اول مرکز فاریاب با قیمت مجموعی مبلغ (٦،۱۹۱،۷۸۰- شش ملیون یکصدو نود یک هزارو هفتصدو هشتاد افغانی) اعطاء نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هر گونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر اعلان الی (۷) هفت روز تقویمی طور کتبی با دلایل آن به {آمریت تهیه وتدارکات شرکت امارتی نفت وگاز افغانستان} واقع {ناحیه ۱۷، سرکوتل خیرخانه} مطابق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارایه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر وطی مراحل قانونی بعدی قرارداد منعقد نخواهد شد.

در حصه نشر متن فوق توجه آمریت محترم را خواهانم و از نشر آن رسماً این آمریت را اطمینان دهید. ۹۳۰۹

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شرکت برادران طاهری لمتید یک عراده موتر پلیت ۹۹۷۳۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای میلاد احمد فرزند مخلص الدین بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند.۹۲۹۰

**اطلاعیه مفقودی**

ترجمه انگلیسی نکاح خط شرعی نمبر ۹۴/۱۸ مورخ ۱۴۴٦/۲/۲۴ به اسم غلام سخی رحمانی فرزند خیر محمد و محترمه روشن رحمانی بنت محمد سرور مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشد. ۹۲٦٦

**اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه**

محترم صدیق احمد ظاهر فرزند حاجی ظاهر الدین ولدیت مومن خان دارنده تذکره نمبر ( ۳۷۴۴۲-۰۸۰۰- ۱۳۹۸ ) مسکونه اصلی ولایت پکتیا مالک امتیاز دواخانه فیضان واقع ولسوالی چهار آسیاب ولایت کابل عنوانی معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم خیر الله خیرخواه منگل فرزند عبدالظاهر ولدیت حاجی غازی دارنده تذکره شماره ( ۲۳۱۴۸- ۰۲۰۱ - ۱۴۰۱ ) مسکونه اصلی ولایت خوست گردیده است .

اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۲۸۹

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شرکت نوین احمدی لمتید یک عراده موتر پلیت ۴۴۲۵۴-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای عبید الله فرزند محمد ظاهر بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۲۸٦

**اطلاعیه دعوت به داوطلبی**

جمعیت هلال احمر افغانی در مورد اعمار مرتفع سازی دیوال احاطه و کانکریت ریزی پیاده روهای نماینده گی پکتیکا مطابق نقشه و مشخصات آن درج آفر می باشد به داوطلبی می سپارد.

از شرکت های ( ساختمانی ) که در قسمت فعالیت داشته باشند ، درخواست های خویش را به آمریت تهیه ، تدارکات و قرار داد های جمعیت هلال افغانی واقع افشار سیلو بسپارند ، خود شان بعد از نشر اعلان الی مدت ۱۴ روز به مجلس داوطلبی مراجعه نموده و پول حق الاشتراک مبلغ ۱۰۰۰ افغانی نقدا اخذ میگردد.۹۲۹۲

**اطلاعیه مفقودی**

یک جلد پاسپورت عادی به اسم محترم سید یاسر فرزند سید محمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۳۰۰۰٦

**اطلاعیه لیلام**

اداره نوی کابل بانک (۲) عراده وسایط قابل لیلام خویش را به تاریخ ۱۴۰۳/۱۲/۷ازطریق پروسه لیلام به فروش می رساند، بناً اشخاصی که خواهش خریداری وسایط متذکره را داشته باشند درخواستی های خویش را بعد از نشراعلان به مدیریت عمومی خدمات وتدارکات نوی کابل بانک تسلیم نموده جدول مشخصات وسایط را ملاحظه پول تضمین ۱۵فیصد قبل ازشروع پروسه داوطلبی نقداً اخذ میگردد.۹۳۰۴

---

### کوتاه نگرشی بر تجاوز ...

افغان ها لبیک گفته و با سر های افگنده و دنیای شرمساری نادم و خجل فرار را بر قرار ترجیح دادند ویک لکه ننگ را در تاریخ به نام خود درج نمودند.

شکست روس ها تنها بیانگر متانت افغانها نیست ، بلکه بارها مردم شجاع ومجاهد ضمیر افغان برای متجاوزین درس عبرت داده اند. پس از روس ها امریکا چنین خواب وخیال را دید وپنداشت

که افغانستان لقمه چربیست، اما ایکاش از روس ها و انگلیس ها وشکست شان درس می گرفت واین خواب را در سر نمی پرورانید.

خوشبختانه امریکا نیز؛ مانند روس ها با شرمساری و سرافگنده برگشت وشکست خود را پذیرفت.

اکنون نیز از طرق مختلف می‌خواهند بر پیکر این ملت و سرزمین مجاهد پرور ضربه بزنند ودست های آلوده خود را در این سرزمین مقدس دراز کنند، اما مردم افغانستان دیگر به هیچ اجنبی اجازه نمی دهد تا بر آزادی وآبادی کشور شان کسی مداخله نماید.

دیگر هیچ ابر قدرتی نمیتواند جنگ های نیابتی را در این سرزمین سازماندهی نماید. آزادی، امنیت و آرامش در این کشور تآمین است و اکنون افغانها در بازسازی کشور خویش جد وجهد می‌نمایند .

روی متجاوزین سیاه ولکه ننگ تاریخ تحفه برای شان. زنده باد افغانستان سربلند و آزاد

### له ډیپسیک پرته د چین ...

د چین ادعاوې دروغ بللي او پرې يې باور نه کاوه خو د ډیپسیک جوړولو امریکا او نورې نړۍ ته ډېر ټکان ورکړ او د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ د چین ‹ډیپسیک› ټکنالوژي امریکایي شرکتونو ته د ‹خبرداري زنګ› وباله.د چین د مصنوعي ځیرکتیا کمپنۍ دا مهال نړۍ کې له بل هر هېواده ډېر تولیدات تیاروي او د چین د ټکنالوژۍ لويې کمپنۍ د بېلګې په ډول علي بابا او بایټ ډانس په خپلو توکو لکه د ګوګل او خلاصې مصنوعي ځیرکتیا (اوپن اې ای) هومره پیسې لګوي،خو له دې سره امریکا اوس هم نړۍ کې په مصنوعي ځیرکتیا کې مخکښه ده او ‹د چین جوړ ۲۰۲۵› پلان لا له امریکا نه دی مخکې شوی خو ګواښ هرو مرو دی.

د کوانټم میخانیک نړۍ کې چې د مصنوعي ځیرکتیا پر مټ یوه پرمختللې محاسبوي برخه ده لا هم امریکا مخکې ده سره له دې چې چینایي ساینسپوهان د نړۍ د هر بل هېواد په پرتله په کلني ډول په دې اړه ډېرې لیکنې او څېړنې خپروي.امریکا په پرله پسې ډول د چین له خوا ورپېښو ننګونو او پرمختګونو ته د ګواښ په سترګه ګوري او له همدې امله يې خپل مزل ګړندی ساتلی او اوس مهال لیدل کېږي، چې د مصنوعي ځیرکتیا او نورو برخو کې د سلګونو میلیاردو ډالرو پانګونه کوي.د چین لپاره بیا بل ګواښ د ملي امنیت اړوندو اندېښنو ته ځواب ورکول او ترې ځان خلاصول دي.

ټېک ټاک چې لومړۍ ناامریکایي مشهوره ټولنیزه شبکه ده د امریکا له خوا پرې تورونه دي چې د دغه هېواد ملي امنیت ته ګواښ پېښولی شي او ګواکې مهم معلومات د چین حکومت ته ورکوي. امریکا کې په دغې چینايي ټولنیزې رسنۍ د جاسوسۍ شک کېږي او محکمو يې د بندولو پرېکړه کړې.

دې تجربې ته په کتو د چین د انلاین خرڅلاو اپلېکېشنونه لکه شېن او تیمو چې د امریکایي امازون په څېر کار کوي او نوی اپلېکېشن ډیپسیک پر مختګ هم له ګواښ سره مخ کېدی شي.بله خوا که د چینایي موبایل جوړوونکي کمپنۍ هواوي مسیر ته وکتل شي له لوېدیځې نړۍ پرته هم بریالی بلل کېږي. په ۲۰۱۹ کال کې چې کله د موبایلونو د تولید دا چینایي کمپنۍ د ملي امنیت د اندېښنو له امله له بندیزونو سره مخ شوه، نو دغې کمپنۍ د پنځم نسل ( ۵جی) او موبایل د نورو تیلفونونو په جوړولو کې د پام وړ پرمختګ درلود.دغې کمپنۍ چې لوېدیځه نړۍ کې پرې محدودیتونه لګېدلي اوس خپل پام د نړۍ نورو هېوادونو ته اړولی او د پام وړ ګټه کوي.

### د نړۍ هر زورواکي ...

د ستړې بریا له امله د اسلامي امارت له لوري د ملي راډیو تلوېزیون په تالار کې ستره غونډه را بلل شوې وه ، د افغانستان د ملي‌راډیو تلویزیون رئیس قاري محمد یوسف احمدي په دې تړاو جوړو شویو مراسمو کې د افغانانو قربانۍ وستایلې او ویلي يې دي، چې افغانانو د اشغال پر وړاندې بې شمېره قربانۍ ورکړې او هغه ملت ،چې قرباني ورکړي د پردیو غوښتنې نه مني. نوموړي زیاته کړې؛ پخواني شوروي اتحاد د افغانانو په اړه سمه مطالعه نه درلوده او په دې نه پوهېدل، چې افغانان د آزادۍ فکر او روحیه لري.

د اطلاعاتو او فرهنګ وزیر ملا خیرالله خیرخواه د سلواغې د ۲٦مې په مناسبت په جوړو شویو مراسمو کې ویلي، چې په افغانستان کې له ۴۵ کلونو وروسته یو واحد نظام حاکم دی. د پردیو مغرضو کړیو د تبلیغاتو پر وړاندې هېوادوالو ته د رښتینو معلوماتو ورکول زموږ د ټولو مسئولیت دی. د مالیې وزارت اداري مرستیال مولوي دوست محمد مخلص د پخواني شوروي اتحاد یرغل د افغانانو د دین، کلتور او خپلواکۍ د ختمولو هڅه بللې او ویلي یې دي، چې پر افغانستان د شوروي اتحاد یرغل یوازې نظامي برید نه و، بلکې د افغانانو د دین، کلتور او خپلواکۍ د ختمولو هڅه وه.

غوښتنه داده ،چې د تېر او اوسني جهاد د شهیدانو د سپېڅلو ارمانونو د وارث په توګه دې لاسره متحد او یو موټی شي، زموږ څو لسیزې جګړه ځپلی ولس دې د ښېرازۍ تر مزله ورسوي، دغه راز کورنیو او بهرنیو کړیو ته دې اجازه ورنه کړي، چې د هېواد په کورنیو چارو کې د لاسوهنو هڅې وکړي، ځکه زموږ د خاورې ساتنه د هېواد پر هر وګړي لازمه ده او دا حق لري، چې د یرغلګرو له منګولو د تل لپاره دغه خاوره خلاصه وي او نور چاته د دې اجازه ورنه کړي ،چې زموږ له خاورې دوی د خپل ځان لپاره ګټه پورته کړي!

د دلوې ۲٦تمه هغه ورځ ده چې افغانانو په کې د الله (ج) په مرسته د نړۍ لوی مادي زبرځواک راوپرځاوه او هم يې د خلق او پرچم حلقه بګوشان د نړۍ په وړاندې سرټيټي کړل.

زموږ پر هېواد د پخواني شوروي اتحاد او د هغوی د کورنیوملاتړو او فکري یرغل د تېرو ۴۲کلونو ناخوالو او بدمرغیو د پیل ټکی و، په دغې ورځ د نړۍ تش لاسي او بېوزله ولس د شوروي هغه وحشي ځواک اوبه کړ،چې خپلو اهدافو ته د رسېدو په مقصد يې په ټول وس زموږ په هېواد کې د څو بې ضمیره ملګرو په مرسته داسې جنایات ترسره کول، چې ژبې يې له یادولو او غوږونه يې له اورېدلو عاجز دي.

دغه ستره او تاریخي ورځ او پېښه ثابتوي،چې پر افغانستان او افغان ملت د پردیو افکارو منلو او د دغه جهادپال هېواد د مستعمره ګرځولو لپاره هر ډول مادي هڅه، زر، زور او تزویر هیڅ نتیجه نه ورکوي.

زه یو ځل بیا د دلوې د ۲٦مې په پلمه خپل ټول متدین ملت ته مبارکي وایم، چې د روان جهاد په برکت د شهیدانو، یتیمانو، معیوبینو او مهاجرینو پاکې آرزوګانې پوره شوې او زموږ مېړنیو مجاهدینو یو ځل بیا د خپل پالونکي ستر رب تعالی په نصرت خپل هېواد د امریکایي یرغلګرو له منګولو وژغوره او د روسي لښکرو په شان يې شرمېدلې ماتې ورکړه او د شپې له لوري يې له کابل هوایي ډګره خپلې کنډې کپرې کډې بار کړې!

### د لویو لارو د جوړولو ...

چې د سیمې د اوسېدونکو لپاره به د تګ او راتګ په برخه کې ګڼې آسانتیاوې رامنځته کړي.

د کابل-غزني دویم لین سړک: د اساسي جوړونې چارې يې پیل شوي دي، چې د مرکز او ولایتونو ترمنځ به د ترافیکي بهیر په ښه کولو کې مرسته وکړي.

د کابل-جلال اباد دویم لین سړک: د اساسي جوړونې چارې يې پیل شوې دي او له ختیځو ولایتونو سره به د مرکز سوداګریزې اړیکې لا پیاوړې شي.

د هرات-غور سړک: د لسګونو کیلومترو په اوږدوالي دا سړک د هرات او غور ولایتونو ترمنځ د اتصال او اقتصادي ودې لپاره حیاتي اهمیت لري، د دې پروژو پلي کېدل به د هېواد په اقتصادي پرمختګ، د ترافیکي بهیر په ښه کولو او د هېوادوالو په ورځني ژوند کې د پام وړ مثبت بدلونونه راولي.د یادونې وړ ده، چې د اسلامي امارت د مشرتابه عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله ) د حکم له مخې، په لویو لارو کې د ۷۵ مسجدونو د جوړولو چارې هم پیل شوې دي، چې د مسافرو لپاره به د لمانځه او استراحت اسانتیاوې ورسره برابرې شي.

### د نوي کابل ښار د لومړي فاز ...

۳ میلیونو تنو ته به د استوګنې ځایونه برابر شي او ورسره به دا ستونزه هم هواره شي.)) د کابل والي د دې ولایت په ولسوالیو کې اوبو، برښنا، روغتیایي خدمتونو او ښوونیز بنسټونو ته د خلکو د لاسرسي د نشتوالي ستونزه مني او وایي، د دې ستونزو د هواري په موخه به په نږدې راتلونکې کې یو شمېر پروژې پلي شي.دی زیاتوي: (( یو پایپ لاین د چهارآسیاب له خوا راځي او بل اسلامي امارت پلان لري، چې له پنجشیر سیند څخه خلکو ته د څښاک اوبه برابرې کړي. د دغو پروژو قرارداد لا نه دې لاسلیک شوي، خو کله چې په شرایطو برابر شرکتونه پیدا شي، دا ستونزه به هم هواره شي.))د کابل والي له شمشاد سره مرکه کې ویلي، په پلازمېنه کې د شاوخوا ۷۰ زره جریبه غصب شویو ځمکو د بیا راګرځولو هڅه کوي او په دې تړاو یو شمېر اړین ګامونه پورته شوي هم دي.دی په دې اړه وایي: (( څه کم ۴۰۰ زره جریبه ځمکه تر څېړنې لاندې ده. دغه کار درې پړاوونه لري، ځینې ځمکې تر څېړنې لاندې دي، ځینې يې تثبیت شوې او یو شمېر هم محاکمو ته سپارل شوې دي. دا د افغانستان په تاریخ کې یوه غټه لاسته راوړنه ده ، چې اسلامي امارت دولتي جایدادونه له زورواکو اخلي او بېرته يې نظام ته سپاري. تر اوسه ۷۰ زره جریبه غصب شوې ځمکه بېرته دولت ته سپارل شوې ده. په دې اړه به اسلامي امارت پرېکړه کوي ،چې له دغو ځمکو څه ډول ګټه واخلي.)) د کابل والي ښاریانو ته ډاډ ورکوي، چې د اسلامي امارت امنیتي ځواکونو په ښار کې بشپړ امنیت تامین کړی او د هغو کسانو مخه نیسي چې غواړي د ښاریانو د امنیت ننګولو هڅې وکړي.

### افغان او ایراني لوري ...

په فرهنګي، ټولنیزو او روزنیزو برخو کې تلپاتې همکاریو ته ژمن دی او غواړي د دواړو هېوادونو ترمنځ سوداګریزې اړیکې نورې هم پراخې شي.

### لوګر کې د هستوګنې ...

نوموړی زیاتوي، چې د ځمکې له غوراوي او کروکي وروسته به معلومات له وزارت سره شریک کړي، چې د توپوګرافي سروې او پلان جوړولو په موخه اړوندو څانګو باندې حکم ورکړي.لوګر کې د کور او ښار جوړولو رئیس وايي: د یاد ولایت مرکز او ولسوالیو کې اووه ښارګوټي جوړېږي، چې د پنځو نورو لپاره به هم اقدامات وکړي.نوموړي زیاتوي: په دې ولایت کې د اراضۍ په ګډون د شاوخوا لسو ادارو په ملتیا يې د دغو ښارګوټو د جوړولو په موخه تصفیه شوې امارتي ځمکه غوره کړې، چې کدستري قطعات يې له مساحت او حدودو سره معلوم او قید دي.د یادونې وړ ده، چې د کور او ښار جوړولو وزارت هڅه کوي ،چې هېواد کې د کرنیزو ځمکو د له منځه تګ مخنیوي وشي، په ښارونو کې انډولیزه پراختیا رامنځته شي، سوداګریزې، پراختیایي، صنعتي، تفریحي او نورې ساحې معلومې شي او د مخ پر ودې نفوسو لپاره د استوګنې معیاري ځایونه برابر شي.

### له افغانستان څخه ...

ترانزیټي موټرو ته د تګ اجازه ورکړي.همداراز په ګډ بازار کې افغان سوداګر کولای شي خپلې وچې مېوې وپلوري او هوکړه شوې چې بېړنې ناروغان د تذکرې په درلودلو سره د ګډ بازار روغتون ته مراجعه کولای شي.

### هلمند کې د ۳ پروژو ...

وزیر ملا محمد یونس اخوندزاده او ورسره مل پلاوي، د هلمند ولایت د امنیه قوماندانۍ قوماندان ملا امین الله زبیر، د کلیو د بیارغونې او پراختیا رئیس ملا محمود ثاني د کجکي ولسوالۍ مسئولینو او د یادو سیمو علمای کرامو، سپین ږیرو مخورو او ځوانانو ګډون کړی و.په دې غونډه کې د کلیو د بیارغوني او پراختیا وزیر ملا محمد یونس اخوندزاده ویلي:د کلیو د بیا رغوني او پراختیا وزارت د متوازن انکشاف لپاره ژمن دي او د خپلو امکاناتو په نظرکي نیولو سره د پروژو پلي کول د هېواد لري پرتو سیمو ته جاري ساتلي دي.همدارنګه نوموړي له ځایي اوسېدونکو څخه غوښتي، چې له پروژو څخه د ګټې اخیستنې په صورت کې جدي مراقبت وکړئ. دغه‌راز د یادو پروژو د کار په لړ کې به سلګونه تنه کاریګرو ته د کار زمینه برابره او په بشپړېدو سره به يې د یادو سیمو د اوسېدونکو ستونزې تر یوحده حل شي.د یادونې وړ ده، چې د کلیو د بیارغونې او پراختیا وزارت په پام کې لري، چې د هلمند ولایت په ټولو ولسوالیو او په خاصه توګه بیا په هغو ولسوالیو کې چې د کار کولو په کې ډېره اړتیاوې خپل خدمات وړاندې کړي.

### نورستان کې یو روغتیایي ...

له ګڼو ستونزو سره لاس او ګریوان وو.

د یادونې وړ ده، چې له دې وړاندې د عامې روغتیا وزارت د نورستان په نورګرام ولسوالۍ کې د ۲۸ میلیونه افغانیو په لګښت د یو بل روغتیایي مرکز د جوړېدو چارو د پیل خبر ورکړي و.

### ارزګان کې ۱٦ کلنه دښمني ...

خو وړمه ورځ د مسئولینو له لوري بېرته سره پخلا شول او د فیصلې له منلو وروروسته يې یو بل ته د وروري غاړې ورکړې.د دې وزارت په وینا؛ دوی په خپله تېره دښمنۍ پښېماني وښوده او د اسلامي امارت له مشرانو څخه يې د منني ترڅنګ ژمنه وکړه، چې له دې وروسته به یو بل ته کوم خنډونه نه جوړوي بلکې د ورورۍ ژوند به کوي.

### تېره میاشت د څه باندې ...

پاکستان، هند او عربي متحدو اماراتو ته او له ټولو زیات واردات بیا له ایران، پاکستان او چین هېوادونو څخه ترسره شوي دي.د یادونې وړ ده، چې په صادراتو کې صادرات او بیاځلي صادرات او په وارداتو کې ټول محصولي او غیر محصولي واردات د برښنا د وارداتو له ارزښت پرته، شامل دي.

### تاجکستان کې ۳۰ تنه ...

وروسته له هغې له داعش سره د همکارۍ په تور محکومېږي، چې له دې وړاندې تاجکستاني وګړو مسکو ته څېرمه یوه سالون کې د ډزو پر مهال ۱۴۵تنه ووژل او لسګونه نور يې ټپيان کړل او په خپلو اعترافونو کې يې ویلي و، چې له داعش سره یو ځای شوي دي. دا په داسې حال کې ده، چې د اسلامي امارت چارواکو په وار وار ټینګار کړی، چې ځیني هیوادونه په سیمه کې د ناامنۍ رامنځته کولو لپاره له داعش سره مرسته کوي او د دې ډلې لپاره يې ښوونیز مرکزونه، مالي امکانات او بشري قوه برابره کړې.

### ملل متحد به ۲٦۴۳خانواده ...

کمک شده است. به خانواده‌هایی که کودکان خردسال دارند، ۱.۵ کیلوگرام پلمپی و سه کیلوگرام سوپرسریال نیز کمک شده است.

### پاکستان کې چاودنې ...

حکومت هم په رسمي توګه په دې اړه څه نه دي ویلي. د پاکستان په جنوب لوېدیځ کې بلوچستان ایالت له افغانستان او ایران سره ګډه پوله لري او پرېمانه طبیعي زېرمې پکې شته.په دې سیمه کې له کلونو راهیسې د پاکستاني حکومت پر ضد وسله‌والي ډلې بریدونه ترسره کوي. د ویلو وړ ده چې په وروستیو څو کلونو کې د پاکستان په بېلابېلو سیمو کې ناامنې، وسله‌وال بریدونه او چاودنې په بېساري توګه زیاتې شوې دي.

### چمپینز ټرافي کې ...

جایزه لري.د کریکټ نړیواله شورا وايي ،چې پر دې ټولو سربېره، هرې لوبډلې ته په چمپینز ټرافي کې د ګډون له امله ۱۲۵ زره ډالره هم ورکول کېږي.د چمپینز ټرافي سیالیو ټولې نقدي جایزې ٦.۹ میلیونه ډالره دي او دا سیالۍ د فبرورۍ په ۱۹مه پیل کېږي او د مارچ په نهمه پای ته رسېږي.

### له پوځي ګواښونو ...

خپل ځواک پیاوړي کړي.امریکا له دې وړاندې هم شمالي‌کوریا ته د توغندیو ازموینې د مخنیوي لپاره وار په وار د بندیزونو او خبرداري ګواښ کړی، خو شمالي‌کوریا بیا وایي، ازموینې يې، د ځان د دفاع لپاره دي.

### د امریکا د څو فدرالي ...

چې له دندو ګوښه شویو کارمندانو د پوهنې وزارت، د کوچنیو سوداګریو ادارې، د مصرف کوونکو د مالي خوندیتوب ادارې او د عمومي خدماتو ادارې کې کار کاوه.د امریکا ولسمشر، ډونالډ ټرمپ د فدرالي حکومت د بیارغونې لپاره پراخ اقدامات پیل کړي دي، کوم چې د هغه په باور (( بې کفایته او له ضایعاتو او درغلیو ډک دي.))د راپورونو له مخې د پخواني ولسمشر، جو بایډن په مشرۍ کاري ځواک شاوخوا ۱۰۰ زره و، چې په دوی کې شاوخوا ۱٦ زره ازمایښتي کارګران شامل وو.ډونالډ ټرمپ، ایلان ماسک د حکومت د موثریت د څانګې مشر ټاکلی او هغه ته يې د امریکا د ۲،۳ میلیونه پیاوړې ملکي فدرالي کاري ځواک د کمولو دنده سپارلې ده.

# Hewad Daily

یکشنبه د شعبان المعظم ۱۷ مه ۱٤٤٦ ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د سلواغې ۲۸ مه د 2025م کال د فبروری ۱٦ مه

دورځپانو رئیس : انجنیر عُزیز «بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲٦۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱



پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل افغانستان
داړیکو شمېره: س۰۲۵۲٦۳٤۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷٦٦۰۴۴۹٦٦-۰۷۳٦۰٦۰۷۳


# تېره میاشت د څه باندې ۱٦۲ میلیونو ډالرو په ارزښت صادرات شوي

د احصایې او معلوماتو ملي اداري د هېواد په کچه د ۱۴۰۳ کال د مرغومي میاشتې د صادراتو او وارداتو اړوند ارقام راټول او تحلیل کړي دي.د دې ارقامو له مخې په یاده میاشت کې د هېواد په کچه د صادراتو ټول ارزښت ۱٦۲.۲ میلیونو ډالرو او د وارداتو ټول ارزښت ۱۰۹۷.۲ میلیونو ډالرو ته رسېږي.دا په داسې حال کې ده، چې د ۱۴۰۳ کال په لیندۍ میاشت کې د هېواد د صادراتو ټول ارزښت ۱۹۰.۲ میلیونو ډالرو ته رسېده.د ارقامو دا تحلیل ښيي، چې د روان کال د مرغومي میاشتې د صادراتو ارزښت د لیندۍ میاشتې د صادراتو په پرتله ۲۸ میلیونه ډالره کموالي لري.له بل لوري د ۱۴۰۳ کال په لیندۍ میاشت کې د هېواد د وارداتو ارزښت ۱۰۴۱.۵ میلیونو ډالرو ته رسیده، چې د همدې کال په مرغومي میاشت کې د ۵۵.۷ میلیونو ډالرو په ارزښت زیاتوالي په‌کې راغلي دي.ارقام ښيي، چې د ۱۴۰۳ کال په مرغومي میاشت کې له ټولو زیات صادرات... ۳مخ

# تاجکستان کې ۳۰ تنه له داعش سره د اړیکو له کبله په بند محکوم شوي

تاجکستان کې یوې محکمې تازه له داعشي خوارجو سره د اړیکو په تور ۳۰تنه له ۸ څخه تر ۲۰ کلونو په بند محکوم کړي دي. رویټرز خبري اژانس ویلي، دغو کسانو تېر کال هڅه کړې وه، چې د تاجکستان پلازمېنه دوشنبه کې په ځینو مراسمو کې د ګڼو کوونکو په ډوډۍ کې مسموم کوونکي توکي واچوي. د تاجکستان قضایي چارواکو ویلي، د نیول شویو کسانو ۱۰ تنه نور ملګري تر تعقیب لاندې دي. دغه کسان ... ۳مخ

# ملل متحد به ۲٦۴۳خانواده در سمنگان مواد خوراکی کمک کرد

مسئولین محلی در سمنگان، می‌گویند که برنامه جهانی غذای سازمان ملل متحد، به همکاری مؤسسه تقویت اجتماعی افغانستان (ASIO) و در هم‌آهنگی با ریاست احیا و انکشاف دهات این ولایت، به ۲٦۴۳ خانواده نیازمند در ولسوالی خلم مواد خوراکی کمک کرده است.
نیک‌محمد نیکزی، مدیرمسئول مؤسسه تقویت اجتماعی افغانستان در ولسوالی خلم، می‌گوید که در این روند ۱۳۲ تُن آرد، ۱۲ تُن روغن، ۱٦.۵ تُن دال‌نخود، ۱.۳ تُن نمک، ۳.۹٦۴ تُن پلمپی و ۷.۹۲۹ تُن سوپرسریال، به خانواده‌های نیازمند توزیع شده است.
از این کمک‌ها، به هر خانواده ۵۰ کیلوگرام آرد، ۴.۵ کیلوگرام روغن، ٦.۲۵ کیلوگرام دال‌نخود و ۵۰۰ گرام نمک... ۳مخ

# نورستان کې د موټرو لپاره پارکېنګ جوړ شو

د نورستان امنیتي مسئولین وايي، چې په یاد ولایت کې د څه باندې ۵ میلیونو افغانیو په لګښت د دولتي وسایطو لپاره پارکینګ جوړشوی دی.د نورستان امنیه قوماندان مل پاسوال مفتي محمد یوسف جمالزي د یاد پارکینګ د پرانستې په مراسمو کې وویل، چې د یادې قوماندانۍ په انګړ کې د دولتي وسایطو د تنظیم او خوندیتوب په موخه د ۵ میلیونو ۴۰۰ زره افغانیو په لګښت پارکینګ جوړ او د یوشمېر دولتي مقاماتو په شتون کې ګټې اخیستنې ته سپارل شوی دی.نوموړي د یاد پارکینګ جوړېدل یومهم ګام وباله او زیاته یې کړه، دغه پارکینګ به د وسایطو په منظم پارکولو او ساتنه کې مهم رول ولري او د امنیتي چارو په اغیزمنتیا کې به مثبت بدلون رامنځته کړي.
د یادونې وړ ده، چې د یادې پروژې چارې په ټاکل شوې موده کې په معیاري ډول ترسره شوې او د اړوندو چارواکو له خوا یې څارنه شوې ده.

# بدخشان کې د یوه سړک د پخولو چارې بشپړې شوې

د فیض اباد ښاروالۍ مسئولین وايي، چې په دغه ښار کې د ۵ میلیونه ۲۰۰ زره افغانیو په لګښت د یوه سړک د پخولو چارې بشپړې شوې دي.د فیض اباد ښاروالۍ مطبوعاتي مسئول عتیق الله اماني باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي، چې دغه سړک ۱٦۰ متره اوږدوالي او ۱۳ متره سور لري، چې چارې یې په پنځو میاشتو کې بشپړې شوې دي.د نوموړي په وینا، د دې پروژې د جوړېدو پر مهال د سیمې یو شمېر اوسېدونکو ته د کار زمینه هم برابره شوې وه.د سیمې اوسېدونکو د یاد سړک د جوړېدو له امله خوښي څرګنده کړې او وايي، چې د دې سړک په جوړېدو سره به د دوی د تګ راتګ ستونزې حل او زیاتې اسانتیاوې به ورته برابرې شي.

# اوکراین کې د جګړې د پای ته رسولو لپاره غیررسمي خبرې پیل شوې

د اوکراین ولسمشر، ولاديمير زلنسکي د ډونالډ ټرمپ له مرستیال «جې ډي ونس» سره د مونیخ امنیتي کنفرانس پرمهال کتلي او ویلي یې دي چې کیف د واقعي سولې په لور حرکت ته چمتو دی.ښاغلي زیلینسکي لا ورمه ورځ له امریکایي پلاوي سره خپلې خبرې د قناعت وړ وبللې .په دې کتنه کې د امریکا د بهرنیو چارو وزیر، مارکو روبیو او د روسیې او اوکراین لپاره د ولسمشر ځانګړی استازی «کیت کیلوګ» هم د امریکایي پلاوي برخه وو.د امریکا د ولسمشر مرستیال «جې ډي وینس» چې د امریکایي پلاوي مشري یې کوله، هم د اوکراین له پلاوي سره خپلې خبرې د قناعت وړ وبللې او ویلي یې دي: (( زموږ هدف د جګړې پای ته رسول دي، موږ غواړو چې وژنه ودرول شي، خو موږ غواړو چې یوه دوامداره سوله ترلاسه کړو، نه داسې سوله چې په څو کلونو کې به ختیځه اروپا ونیسي.))دا خبرې وروسته له هغه پیل شوې چې د امریکا ولسمشر، ډونالډ ټرمپ تېره اوونۍ د روسیې له ولسمشر ولاديمير پوتین سره خبرې وکړې او په اوکراین کې د جګړې د ژر تر ژره پای ته رسولو پر سر بحث وشو.

# پاکستان کې چاودنې د ۱۱ تنو ژوند اخیستی

د پاکستان د بلوچستان ایالت چارواکي وايي ،چې هلته د کان‌کیندونکو پر موټر د خښ‌شوي ماین د چاودنې په پایله کې ۱۱ کسان وژل شوي او شپږ نور ټپیان دي. رویټرز خبري اژانس ورمه ورځ د پاکستاني چارواکو په حواله لیکلي ،چې چاودنه په «هرناي» سیمه کې شوې او ۱۷ کسانو ته پکې مرګ‌ژوبله اوښتې ده. په راپور کې ویل شوي ،چې پېښنه د سړک په غاړه د ځای پرځای شوي ماین د چاودنې له امله شوې او د دوو ټپیانو روغتیایي وضعیت نازک ښودل شوی دی. تر اوسه هېچا د دې چاودنې مسئولیت نه دی منلې او پاکستاني... ۳مخ

# چمپینز ټرافي کې د هرې لوبې ګټل ۳۴۰۰۰ ډالره جایزه لري

د کرېکټ نړیوالې شورا د چمپینز ټرافي سیالیو نقدي جایزې اعلان کړې، چې له مخې یې اتلې لوبډلې ته به ۲.۲۴ میلیونه ډالره ترلاسه کړي.همداراز د چمپینز ټرافي اته لوبډلې پر دوو ګروپونو وېشل شوي او د ګروپي لوبو هر برى ۳۴ زره ډالره ... ۳مخ

او دویم مقام ته به ۱.۱۲ میلیونه ډالره ورکول کېږي. د دې نقدي جایزو په لړ کې درېیمو او څلورمو مقامونو ته به ۵٦۰- ۵٦۰ زره ډالره، پنځمو او شپږمو هر یو ته ۳۵۰زره-۳۵۰زره او اووم او اتم مقام والا لوبډلې به ۱۴۰زره-۱۴۰زره ډالره ترلاسه

# سپین بولدک کې ۲۱۹۵ کیلوګرامه نشه یي توکي ضبط شول

د کندهار ولایت رسنیز دفتر خبر ورکړي، چې امنیتي ځواکونو د یو لړ عملیاتو په ترڅ کې د دې ولایت په سپین بولدک ولسوالۍ اړوند سرو څاهانو سیمه کې ۲۱۹۵ کیلوګرامه نشه یي توکي ضبط کړي دي. سرچینه د مسئولینو له قوله وايي، یادو نشه یي توکو کې ۲۱۲۳ کیلوګرامه چرس او پاتې ۷۲ کیلو ګرامه تریاک شامل دي. خبرپاڼه کې راغلي، چې تېره اوونۍ په ښورابک ولسوالۍ کې هم امنیتي ځواکونو د یو لړ کشفي عملیاتو په ترڅ کې د همدې ولسوالۍ د پنځمې حوزې اړوند فرضي کرښې ته څېرمه څه باندې ۴زره کیلو ګرامه نشه یي توکي ضبط کړي وو.
یاده دې وي، چې هېواد کې د اسلامي امارت په راتګ سره د نشه يي توکو په وړاندې کلکه مبارزه شوې او په دې برخه کې نیول شوي کسان د قانون منګولو ته سپارل شوي دي.

# د امریکا د څو فدرالي ادارو د کارمندانو ډله‌ییز ګوښه‌کېدل پیل شول

رسنیو د امریکا د فدرالي ادارو د اتحادیو او کارمندانو د سرچینو په حواله راپور ورکړی، چې د هیواد په څو دولتي ادارو کې د ډله‌ییزې ګوښه‌کېدنې پیل شوې دي.رویټرز لیکلي ، چې په دوی کې ډېر کارمندان نوي ګمارل شوي او په ازمایښتي وضعیت کې وو. تر اوسه دا نه ده روښانه شوې ،چې د ګوښه کولو په لومړۍ څپه کې به څومره فدرالي کارمندان خپلې دندې له لاسه ورکړي.رویټرز راپور ورکړي ... ۳مخ

شمالي کوریا امریکا ته:

# له پوځي ګوانښونو لاس واخلئ

شمالي کوریا وايي: که امریکا د خپل کورني امنیت د خوندیتوب په اړه اندېښنه لري، نو له پوځي ګوانښونو څخه دې لاس واخلي.د امریکا یوه پوځي قوماندان څو ورځې وړاندې ویلي و ، چې د شمالي کوریا بالستیک توغندي د دې وړتیا لري ،چې امریکا کې خپل اهداف په نښه کړي.د شمالي کوریا دولتي رسنۍ پرون راپور ورکړی، چې امریکا د دوی پروړاندې له سوېلي کوریا سره پوځي تمرینات کوي او په وینا یې، کوریا ټاپو ته جنګي کښتۍ لېږي.راپور زیاته کړې ،چې د امریکا دې کړنو ته په کتو، شمالي کوریا حق لري ، چې د ځان د دفاع لپاره ... ۳مخ